# ديالكتيک ماترياليزم

## د ځوانانو لپاره

محمد رضا قرباني




# دیالکتیک ماتریالیزم

د ځوانانو لپاره

لیکوال: محمد رضا قربانی

بیا ځلی چاپ: د محسن خپرندوی

بریښنالیک: mohsinpubs@gmail.com

ویبلاګ: http://mohsinpubs.blogspot.com

د خپریدو نیټه: د ۱۳۹۰ کال د کب میاشت



## سریزه

دا کتاب چې اوس ستاسو په لاس کې دی، دیالکتیک ماتریالیزم په نوم یادیږي. په دې کتاب کې مې تر خپله وسه هڅه کړې چې مطالب په ساده توګه بیان کړم ترڅو ځوانان وکولاشي هغه درک کړي.

البته ډاډه یم چې دا کتاب بې له نیمګړتیاوو نه دی او هیله‌مند یم چې په راتلونکي چاپ کې ستاسو د نیوکو او وړاندیزونو څخه په ګټه اخیستلو دغه نیمګړتیاوې له منځه ولاړې شي.

محمد رضا قرباني



و، نه و، هغه وخت چې هګل و، ته نه وې.

ومو ویل هغه وخت چې هګل و، ته نه وې. نو راځـــې وګـــورو چـــې دا هِګل څوک و. په تیرو وختونو کې یوه ورځ یو ماشوم نړی ته سترګې وغړولې، مور او پلار یې په دې ماشو، هِګل نوم کیښود.

هِګل له ماشومتوب نه د مطالعې او څیړنې لیوال و او کله چې لوی شو، یوه ورځ یې له ځان سره وویل: «له دې کارګرانو څخه چې په دې نړۍ څه نه لري باید هغه دنیا هم وانخلو، پریږدې چې لږ تر لږه د هغې دنیا په هیله یې زړونه



خوشحاله وی!» له همدی کبله یی وویل: «ګرانه کارګره! دا چی پانګوال په تا ظلم کوی، مه خپه کیږه، ځکه اصلی دنیا بل چیری ده.»

هِګل دومره بد سړی هم نه و، ځکه چې په خبره یی سر خلاصیده او ویل به یې: «راځئ چې له یو بل سره بحث وکړو» ... ډیر ښه! دی ته وای نانړئ، دی ته وایی دیالکتیک.



ښه ګرانو ځوانانو! تر دې ځای په دي پوه شوئ چی د دیالکتیک معنا بحث کول دي او یوه یوناني کلمه ده.

(دیالکتیک خپل قوانین لري چی د هغي په اړه به یي په راتلونکو پاڼو کی معلومات پیدا کړو، خو باید ووایو چی هِګل د دیالکتیک قوانین کشف کړل).

یوه ورځ هِګل له خپل ملګری سره یوې دښته ته ولاړ. دواړه ډېر زیات تږی شول. د هِګل ملګری وویل: «کاشکی لږی اوبه مو پیدا کړی وای!»

هِګل ورته وویل: «زما ګرانه ملګریه! تر هغه چې زه پوهیږم، ته پدی باور وی چې ټول شیان خوب او خیال دي او هیڅ شی په واقعی توګه نشته، نو اوس څنګه وایی چې کاشکی لږ اوبه مو پیدا کړی وای؟ مګر ستا په نظر اوبه واقعاً شته؟ ښکاره خبره ده چې نه.»

ملګری یی ورته وویل: «سره له دی چې دیر تږی یم او زړه می غواړی چې د اوبو چینه پیدا کړم، خو بیا هم وایم چې ټول شیان او آن اوبه، خوب او خیال دی او واقیعت نلری.»

هِګل وویل: «ته غلط فکر کوئ، د اوبو چینه او ټول نور شیان په واقعی توګه موجود دی، خو دا ټول شیان یوه پیاوړی فکر پیدا کړی دی. باید ووایم چې فکر د دنیا پیدا کوونکی دی.»

د هِګل ملګری وویل: «مړه یاره! موږ دواړه ایده‌آلیستان یو. خو ته عینی ایده‌آلیست او زه ذهنی ایده‌آلیست یم.»

ښه ملګرو، باور لرم چې هرو مرو پوه شوی یاست چې ایده-آلیزم یعنې څه. که پوه شوی نه یاست څه نور هم په اړه یې وغږیږم؟ څنګه؟ ډېر ښه، یو څه به نور هم په اړه یې و غږیږم.

ایده‌آلیزم دوه برخې لري:

۱. **عینی ایده‌آلیزم:** دا منی چې ټول شیان زموږ په چاپیریال کې موجود دی، خو وایی چې دا ټول شیان یوه پیاوړی روح او فکر پیدا کړی دي، له پیاوړي فکر نه منظور، خدای دی.
۲. **ذهنی ایده‌آلیزم:** وایی چې ټول هغه شیان چې موږ یې ګورو او لمس کوو یې، هغه تصویرونه



انځـور شـوي دي. پـدی معنـا چـی ټـول شـیان یوازی زموږ په ذهن کی موجود دي او له ذهـن نه بهر هیڅ شی وجود نه لري.

اجازه راکړئ، دا موضوع له علمی پلوه روښانه کړو.

ایـدهآلیـزم د لانـدینیو دري شـیانو پـه هکلـه خبـری کوي:

۱. هر هغه څه چي موږ یی په خپلو سترګو ګورو او په خپلو لاسونو یی لمس کوو، په واقعیت کی




وجود نلری، خبره ښکاره ده، یعنی دا ټول شیان




زمونږ په ذهن کی دي او له ذهـن څخـه مـو بهـر

هیڅ څه نشته. ځکه چی زمونږ ذهن غواړی یو څه دی وي. د مثال په توکه زمونږ ذهن غواړی چی اوسپنه وی، اوبه وي، لرګی وی او داسی نور شیان وي. لنډا دا چی ټول شیان زموږ د ذهن محصول دي.

د ایده‌آلیزم له نظره، ټول شیان یوازی زموږ په ذهن کي موجود دي او موږ خیال کوو چی زموږ له ذهن څخه بهر دي! ګرانو ځوانانو! ستاسو په فکر دا خبره سمه ده؟ دا خبره خو د لمر په شان روښانه ده او هیڅ فکر نه غواړي،



معلومه ده چی سمه نه ده، ځکه چی کله یوه تیږه پر یوې شیشی ووهئ، شیشیه ماتوي.

د شیشی ماتیدل ښکاره کوي چی ټول شیان بهرنی وجود لري او یوازی هغه تصویرونه نه دي چی زموږ په ذهن کې انځور شوي وي.

مړه دا خبره خو هسې یوه ملنډه وه، راځې چی پدی خبرې وخاندو، ها ها ها ها ها ها.



اوس نو راځې چی ولاړ شو او وګورو د ایده‌آلیزم دویمه خبره څه ده.

۲. ایده‌آلیزم پدی باور دی چی موږ په فکرکولو سره دنیا پیدا کړی ده، یعنی دا چی موږ فکر کوو چی دنیا شته، که څه هم دنیا په اصل کی نشته او دا موږ یو چی فکر کوو دنیا وجود لري.




که دنیا په فکرکولو سره جوړه شوی

وای نو لومړی بنایی د انسان ماغزه جوړه شوي وي او وروسته بیا ځمکه، سپوږمی، لمر او ټول ستوری او سیارې پیدا شوي وي. خو علم وایی: لومړی ځمکه پیدا شوی، له هغی وروسته




بوټی او ونې او هغه موجودات چی په اوبو کی ژوند کوي او بیا و وچی موجودات او انسان پیدا شوی دی.

اوبو ټوله ځمکه ونیوله او اوبه میشته موجودات په اوبو کی پیدا شول / د ځمکی یو په څلورمه برخه وچه شوه او پر هغی باندی بوټی او ژوندي موجودات را پیدا شول

د ځمکی له پیدایښت نه مخکی په ملیاردونه ستوری او سیارې موجودې وې. نو کله چی علم موږ ته داسی یو څه وایی، څرنګه ایده‌آلیزم ادعا لري چی دنیا زموږ فکر پیدا کړی ده؟! آیا ده ملنډی نه دي؟



په رښتیا هم چی جالبه ده!

دریمه خبره هم د دوو تیرو خبرو په شان ده، خو مخکی له هغی باید په لاندی مطلب پوه شو:

تیږه یو شی دی، همدا ډول اوسپنه، مس، لرګی او داسی نور، ټول شیان دي. ټولو د فضا یوه برخه نیولی ده (یعنی دا چی یو ځای یې نیولی دی) او د وخت په تیریدو سره وده کوي (یعنی په یو وخت کې موجود دي).

یو بل څه هم دی شیانو ته وایي .... که ومو ویل چې څه ورته وایي؟ لږ فکر وکړئ ..... ډیر ښه، زه یې په خپله درته وایم. هو، دې ټولو شیانو ته ماده هم وایي.

ګرانو ځوانانو! هر هغه څه ته چی وکړای شوو هم یی په خپلو پنځه ګونو حواسو احساس کړو او هم په یو ځای او وخت کې موجودیت ولري، ماده وایي. خو دلته ځینو ته یوه پوښتنه پیدا کیږی او هغه دا ده چی مثلاْ وبه وایی چی موږ خو میکروب لیدلی نشو، نو هغی ته هم ماده ویلی نشو؟!



نه ګرانو! داسی نده اول دا چی کولای شو میکروب په میکروسکوپ وګورو. دویم دا چی میکروب د فضا یوه برخه نیولی ده او د وخت په تیریدو سره وده کوی او له هغه ځایه



چې چې په یو ځای او وخـــــت کـــــې موجودیت لري، نـو پـه دې کې هـیڅ شک نشـته چې میکـروب هـم مـاده ده. ســربیره پــردې، داســې ډیــر ســتوری او



سیاری شـته چې لـه مـوږ نـه واټن لری او مـوږ نشـو کـولای هغـه پـه خپلو سترګو ووینـو، خـو امکـان شـته چې ځینی یی په تلسکوپ (هغه وسـیله ده چې د لرې واټن ستوري او سیاري وربانـدی لیدل کیږي) وګورو او له هغه ځایه چې په یو ځای او وخت کې موجود دي (یعنـی حجم لري او ورو ورو وده کوي) ماده ورته ویلی شوو.

یوه پوښتنه: آیا انسان ته ماده ویلی شوو؟

ځواب: هو، انسان هم ماده ده، په دې توپیر سـره چې فکـر کوي.



ځـو نـوری پوښـتنی بـه هم وکړم:

آیـا تـر اوسـه مـو چیـری

لیدلي چي تیره فکر وکړی؟ آیا کله مو لیدلي چی اوسپنه پر ډبرې ووهئ، ډبره چیغه ووهي، آخ؟! نه، که مو وویل چی ولي؟ ځکه چی ډبره او اوسپنه او ټول بی ځانه شیان نه ماغزه لري چی فکر وکړي ا و نه احساس لري چي ووایي، آخ. ښه، دا خبره تر دې ځایی په یاد ولرئ.

اوس غواړم تاسو نه پوښتنه وکړم چی آیا انسان فکر کوي؟ ستاسو ځواب به هرو مرو داوی چی: هو. بیخي سمه ده، انسان فکر کوي، انسان په خپلو ماغزو سره فکر کوي.

نو راځی چی اوس ورشو بیرته هماغه شیانو ته. یعنی غواړم تپوس وکړم چې ډبره او اوسپنه او لرګی او مس په څه سره فکر کوي؟



هو، سمه ده. هغوی اصلاً ماغزه نلري چی فکر وکړای شي، نو د فکر کولو لپاره باید د انسان د ماغزو په شان ماغزه ولري.








نتیجه دا چی یوازی د انسان ماغزه کولای شی فکر وکړي. خو پخپله ماغزه څه دي؟ آیا ماده نده؟ هو، لکه څرنګه چی انسان ماده ده، د هغه ماغزه هم چی د وجود یوه برخه یی ده، ماده ده. سر بیره پر دې ماغزه هم په یوه ځای او هم په یوه وخت کې موجودیت لري. نو بیا کولای شو ولیکو:

**لومړی باید ماغزه موجود وي، تر څو فکر وکړای شو.**

یعنې ماده له فکر نه مخکی وجود لري.

شعور څه شی دی؟ یوه هنداره په پام کی ونیسئ: هغه شیان چی له هندارې څخه بهر دي، په هغی کی لیدل کیږی. زموږ سترګی هم شیان ګوري او په خپلو ماغزو کې یی منعکس کوي. یعنی زموږ د چاپېریال د شیانو انځورونه (ماده) زموږ په ماغزو کې لویږي.



پایله دا ده چی شعور زموږ په ذهن یا ماغزو کې د مادې انعکاس دی. مادې میلیاردونه کاله وده کړې، دومره وده یې کړې تر هغی چې د انسان ماغزو ته رسیدلي.

اوس بیا یوه پوښتنه لرم:

که د مادې اوږده وده نه وای، آیا انسان ماغزه به موجود وای؟

ځواب: نه.

که د انسان ماغزه نه وای، آیا شعور به وجود درلودلی وای؟

ځواب: نه.

نو ویلی شوو: شعور د مادې له اوږدې ودې نه پیدا شوی دی. که ماده نه واې، شعور به هم نه وای. ماده کولای شي بې له شعوره وجود ولري، خو شعور بې له مادي وجود نشي درلودل، ځکه لکه څرنګه چي مو وویل: شعور په ماغزو کې د مادې انعکاس دی او کله چی ماده نه وي، شعور به هم نه وي.

نتیجه دا چی: شعور له مادې څخه مخکی ندی، بلکی ماده له شعور نه مخکی ده.

ښه نو، راځی چی وګورو ایده‌آلیستان څه وایی.



۳. د هغوی دریمه خبره دا ده: فکر او شعور له مادې څخه مخکې وجود در لود او ماده یې پیدا کړی ده. خو موږ مخکی وښودله چی ماده له شعور او فکر نه مخکی ده. ماده کولای شي بی فکره او بی شعوره وي. کله ډبرې، اوسپنې او د نورو شیانو په شان، خو آیا تر اوسه پوري مو لیدلي دي فکر او شعور بي له مادي وجود ولري؟ ګرانو ځوانانو! د دې لپاره چی زما په خبره پوه شئ، دې پوښتنی ته ځواب ورکړئ:

**فکر ماغزه پیدا کړي دي او که ماغزه فکر پیدا کوي؟**

تر دي ځای پوري پوه شولو چی ایده‌آلیزم یعنی څه. اوس ګورو چی ماتریالیزم څه ته وایي.



ګرانو ځوانانو! هرومرو به مو په یاد وي چې ومو ویل هګل یو ایده‌الیست و؟ هغه له کومې طریقې څخه کار واخیست؟ آفرین! له دیالکتیک څخه.




و، نه و، یو سړی و چې نوم یې فویرباخ و. په هغه وخت کې زه او ته نه وو. یوه مور وه چې د لودویک په نامه یې یو زوی در لود. ډېر شیطان او وران هلک وو خپله مور یې ډېره تنګه کړې وه. د هغه پوره نوم «لودویک فویرباخ» و.





کله چې لودویک ځوانۍ ته ورسیده، یوه ورځ یې له ایده-آلیست سره بحث کاوه. ایده آلیست ورته وویل:

«مړه یاره! هیڅ څه هم وجود نلري. دا شیان چې په خپل چاپېریال کې یي وینې، یوازې هغه تصویرونه دي چې ستا په

ذهن کې انځور شوي دي، لکه څرنګه چې ځینې کسان وايي دا ټول شیان ماده دي، د هغوی خبره غلطه ده.

ماده هغه شئ دی  چې واقعاً وجود ولري؛ خو پدی دنیا کی هیڅ څه نه پیدا کیږی چې واقعاً وجود ولري. نو له دې نه ښکاری چې ماده اصلاً وجود نلري»

فویر باخ له ځمکی یوه تیږه را وچته کړه او ښاغلی ایده-آلیست ته یی وویل: «دا تیږه وجود لري که نه؟»

ښاغلی ایده‌آلیست وویل: «لکه څنګه چې و مې وویل دغه تیږه یوازې زموږ په ذهن کی وجود لری او زموږ له ذهن څخه بهر وجود نلری؛ هو ښاغلی فویر باخه! موږ یوازې خیال کوو چې دا تیږه واقعاً وجود لري، خو یقین وکړه چې اصلاً زموږ له ذهن نه بهر وجود نلري، ته یوازې خیال کوی چې وجود لري.»





فویرباخ د ایده-آلیست له خبرو

ښځه په قهر او سترې شو او په ډېر زور يې په هماغه تیږه د هغه سر وویشته او سر يي وربانډی مات کړ. بیا یي په کراره وویل: «اوس درته ښکاره شوه چې دا تیږه واقعاً وجود لري؟»

د فویرباخ د همدی کار له امله نورو وویل:

«فویر باخ یو ماتریالیست دی، البته که ووایی چې ماده له فکر او شعور نه مخکی وجود لري.»

هغوي رښتیا ویل. ځکه چې فویر باخ به ویل: «ماده له فکر او شعور څخه مخکی وجود لري.»

خو چې کله به یې هغه ته وویل «ماتریالیسته!»، هغه به په قهریدو او ویل به یې: «ماتریالیست دې پلار دی! ماتریالیست دې مور ده!»

هو، هغه یو ماتریالیست و خو په خپله یې نه منله چې ماتریالیست دی.

د فویرباخ د هِګل د فلسفی څخه بدې راتلل ځکه یوه ایده-لیستی فلسفه وه، په همدی خاطر یې دغه فلسفه چې د ایده‌آلیزم او دیالکتیک مخلوط وه، لرې واچوله.

په دې توګه فویرباخ د هګل دیالکتیک چې د طبیعت او ټولنې د پرمختګ د پېژندلو تر ټولو مهم عامل او د ایده‌آلیزم سرسخته مخالف و، هغه یې د ایده‌آلیزم سره چې د بیوزلۍ او وروسته پاتیوالي عامل و، یو ځای لرې واچاوه. هغه نه پوهیدو چې باید دیالکتیک د هګل له آیده‌لیستي فلسفي



څخه جلا کړي، ځکه تر هغې چې ایده‌آلیزم پر دیالکتیک پوري نښتی و، دیالکتیک هم د استفادې وړ نه و. د فویرباخ د همدې بې پروایي له کبله نورو به ویل: «هغه ماتریالیست دی، خو په دیالکتیک بیخي نه پوهیږي.»

ګرانو دوستانو! تر اوسه پوري به حتماً لږ څه پوه شوي یاست چې ماتریالیزم یعنې څه، خو پریشانه کیږئ مه. تر هغې چې دا مسله په ښه توګه تاسوته روښانه نه کړم بله مسله به پیل نه کړم. تر څو ډاډه نشم چې تاسو پر ماتریالیزم ښه پوه شوي یاست، چیرې مو داسې پرېږدم.

ماتریالیزم او ایده‌آلیزم تل یو له بل سره د مبارزی په حال کی دی. یعنی د یو بل پر ضد دي. وروسته به روښانه شی چی دا مبارزه د ماتریالیزم د ودې لامل گرځی.

لکه څنگه چی مو مخکی وویل، ایده‌آلیزم وایي:

١. فکر او شعور له مادې څخه مخکې وجود لري او ماده یي پیدا کړې ده.
٢. ټول شیان یوازې په ذهن کی وجود لري.
٣. زموږ فکر، دنیا پیدا کړی ده.

خو ماتریالیزم وایی چی دا دري واړه خبرې غلطې دي.

اول ـ فکر او شعور له مادی څخه مخکی وجود نلري؛ بلکه د مادی له اوږد مهاله پرمختگ څخه منځ ته راغلي دي. همدا شان مخکی مو وښودل چی فکر او شعور له مادی څخه جلا وجود نشی درلودلی. مثلاً کله چی وایو فکر د ماغزو محصول دی، یعنی دا چی که ماغزه نه وای، فکر به هم نه وای. له هغه ځایه چی فکر د مادې د اوږد مهاله پرمختگ نتیجه او د مادې تر ټولو پرمختللی بڼه ده، داسی ویلای شو که ماده نه وی، فکر هم نشته.

نو روښانه ده چې فکر نشي کولای له مادې ښخه جلا وي، خو ماده کولای شي له فکر څخه جلا وي، لکه د لرګي، اوسپنې، شیشې او نورو شیانو په څیر.

دویم ـ شیان په ذهن کې وجود نلري، بلکه ټول شیان چې زموږ په چاپیریال کې دي، که ذهن څخه بهر او په جلا توګه واقعي وجود لري، نو ولې شوو چې شیان نه خیالات دي او نه هم تصویرونه.

دریم – موږ په فکر کولو سره دنیا پیدا کړې نده، ځکه چې اول موږ ماغزه درلودل وروسته مو وکړای شول فکر وکړو. سربیره پر دې ماغزه خپله فکر کولای نشي، دا له ذهن څخه بهر نړۍ (ماده) ده چې لامل کیږي ماغزه فکر وکړي. د مثال په توګه: کله چې باران ورېږي، ماغزه فکر کوي چې ولې باران ورېږي؟ یا ولې په آسمان کې بریښنا او تندر پیدا کیږي؟ یا څرنګه شپه او ورځ منځ ته راځي؟ او داسې نور.

نو پردې اساس دا زموږ فکر ندی چې دنیا یې پیدا کړې ده، بلکې دا دنیا (ماده) ده چې زموږ فکر را پیدا کوي.

ښه نو، دا هم د ماتریالیزم به اړه څو خبرې وې؟ خو زموږ اصل مطلب بل شی دی، هغه دیالکتیک ماتریالیزم دی.

ګرانو، هِګل او فویرباخ به مو په یاد وي؟

یو ځل بیا یې په بیړه تکراروم.

هِګل هغه ایده‌آلیست و چې دیالکتیک قوانین یې کشف کړل. خو فویرباخ هغه ماتریالیست و چې د هِګل دیالکتیک یې د هغه له ایده‌لیزم سره یو ځای لرې وغورځاوه.

د هِګل فلسفه د ایده‌الیزم او دیالکتیک مخلوط او د فویرباخ فلسفه د هغه د ماتریالیستی فلسفه وه چې دیالکتیک یې له ځان سره نه درلود.

ګرانو ملګرو، تر دې ځایه خو په ځینو خبرو پوه شوئ. راځئ چې اوس پر یوه بلی مسلې وغږیږو، تر څو معلومات مو لا




نور هم زیات شي.



یو و، یو نه و، زما او ستا نه پرته، ډېر شیان وو. یو سړی و چې مارکس نومیده او ډېر لوی فیلسوف او پوهیالی و. مارکس هغه ظلم او زورزیاتي ځوراوه چې پانګوالو په کاګرانو کاوه. په خپله یې هم په ډېرې بیوزلۍ بدمرغۍ کې ژوند کاوه. له همدې کبله یې ماشومان له لوږې مړه شول. خو بیا هم هغه د خپلې کورنۍ او د خپل ځان په فکر کې نه و او دی ته چمتو و چې خپل ټول ژوند او کارګری طبقې د ژغورنې لپاره قربان کړي. هغه خپل ټول ژوند د کارګرانو د خلاصون د لارې په پیدا کولو کې تیر کړ، ځکه چې د مارکس په وخت کې د کارګرانو طبقه تر ډېر فشار لاندې وه او د ارباب لخوا په ډېره بیرحمانه توګه استثماریده. لنډه دا چې،

د کلونو څیړنو او زده‌کړو وروسته، ورو ورو یی پام شو چې د هِګل دیالکتیک د نړۍ د پرمختګ او د ودې پیژندنی یو مهم لامل دي، خو له هغه ځایه چی د ایده‌آلیزم په ځنځیر تړل شوی، استفاده ورڅخه شوی نده. همداشان د فویرباخ تیروتنی ته یی هم پام شو او په هغه یې د دې لپاره نیوکه وکړه چی د هِګل له ایده‌آلیزم سره یې د هغه دیالکتیک هم یو ځای لرې اچولی دی.

خو مارکس په خپله د هِګل ایده‌آلیزم لری وغورځاوه او د هغه دیالکتیک چی ایده‌آلیستی رنګ یی درلود، واخیست او د فویرباخ د ماتریالیزم په کارولو سره یی د دیالکتیک ماتریالیزم فلسفه جوړه کړه.

په دي توګه هغه دیالکتیک ته ماتریالیستی بڼه ورکړه او فلسفه یی د بشر د خدمت په لاري کی په کار واچوله.

د دي لپاره چی دا مطلب تاسو ته ښه روښانه شي، هغه کار چی مارکس له کلونو د رنځونو او زخمتونو له زغملو وروسته تر سره کړی. په دی توګه لیکو:

| | |
|---|---|
| **د فویر باخ غیر دیالکیتکی** | **ماتریالیزم** |
| **د هِګل ایده‌الیستي** | **دیالکتیک** |

د فویرباخ له فلسفی څخه "غیر دیالکتیکی" او د هِګل له فلسفې څخه ایدهآلیزم لرې کوو

ماتریالیزم دیالکتیک

د فویرباخ ماتریالیزم او د هِګل له دیالکتیک څخه، دیالکتیک ماتریالیزم لاسته راځی.




راځی اوس وګورو چی دیالکتیک ماتریالیزم څه ته وایی؟

تاسو پوهیږی چی قند له لبلبو او کاغذ د ونې له لرګی څخه جوړیږي. همدا شان له تیلو څخه د سرکونو د پخولو

تارکول، پترول او ډیزل لاس ته راځی. که هغه څه چی قند ور څخه جوړیږی، نه وي، قند به هم نه وي، او یا که تیل نه وي، نو تارکول او پترول او دیزل به هم نه وي.

په طبیعت کی ټول شیان له یو بل څخه لاسته راغلی دي، نو ویلی شوو:

ټول شیان په یو بل پوری تړلی دي او په یو بل باندي، اغیزه کوي.

وچکالی له ځان سره قحطی او لوږه راوړي. د پانګوالی نظام بیوزلي او لوږه رامنځته کوي. کارګري انقلاب، پانګوال ځپي.

وچکالی یوه طبیعی پدیده ده چي له ځان سره قحطی راوړي. طبقاتی نظام (بردهګي، فیودالي او پانګوالي) چی ټولنیزه پدیده ده، بیوزلي او لوږه راوړي. کارګري انقلاب چي ټولنیزه پدیده ده، بله پدیده چی د پانګوالی له منځه وړل او د سوسیالیزم راتلل دي، له ځان سره راوړي. له دې کبله پدیدی له یو بل څخه نشي جلا کیدلی او له یو بل سره تړلي دي.

طبیعت د اشیاو او پدیدو مجموعه ده چي له یو بل سره تړاو لري. یعنی له یو بل څخه جلا وجود نشي درلودلي.



د مارکس دیالکتیک وایی: طبیعت په هیڅ توګه د سکون او ودریدو په حال کی نه، بلکی د حرکت، پرمختګ او ودي په حال کي دی. کیدای شي یو جسم ظاهراً ساکن وي خو په اصل کی حرکت کوي.

یوه تیږه په پام کی ونیسیئ، لومړی داسې فکر کوئ چې ساکنه ده، خو که لږ زیات فکر وکړئ او ورته ځیر شئ، ګورئ چی د حرکت په حال کی ده. تیږه د ځمکی پر تله بی‌حرکته ده خو به اصل کې له ځمکی سره یو ځای 24 ساعته او په کال



کي یو ځل له لمر څخه تاویږي.

همدا شان د نړۍ ټول شیان د حرکت او ودي په حال کې دي.



په پخوا زمانو کی د ځمکی پر مخ داسې نیم خزنده موجـودات ژوند کاوه چې ورته به یې ډایناسـور ویلې. د هغـوی د ژونـد په وروستی مودې کی کوچنی تي لرونکی موجودات پیدا شـول چې په ودي یی پیل وکړ، او په ورتـه وخـت کې ډایناسـوران هم د له منځه تللو په حال کې وو.

لـه دې پدیـدې څخـه مـوږ دوه نتیجې اخلـو: یـو داچـی پـه طبیعت کی یو شئ را پیدا کیـږی، وده او پرمختـګ کـوي او یو بل څه له منځه ځی او په یو بل شي بـدلیږی. بـل داچی هغه شیان چې ظاهراً مهم او پایند ښکاری، خو په اصل کی د منځه تللو په حال کی دي او د اهمیت وړ ندي. باید هغـه شیانو ته ارزښت ورکړو چې ظـاهراً ناپانـد ښـکاری خـو نـوی پیدا شوي او غواړی وده او پرمختګ وکړی. له دی کبلـه لـه ډیری کوچنی بڅرکی څخه نیولی تر لمر پوری، ټول د دایمی

پيدايښت او له منځه تللو په حال کی دي، بي له دي چی دا پيدايښت او له منځه تلل يو شيبه هم و ځنډول شي. يعنی دا چی هر څه د حرکت او بدلون په حال کی دي.



ګرانو ځوانانو، لږی اوبه په يوه لوښی کي واچوي او په اور يي کيږدي. له لږی شيبی وروسته به اوبه په بخار بدلي شي. ګورو چی اور اوبه ايشوی. کله چی اوبه د يخوالی نه د يشيدلو خوا ته حرکت کوي، دا حرکت ورو ورو تر سره کيږي، چی دی ته کمی بدلون وايي. کله چی اوبه و ويشيږی، ډير ژر اوبه په ناڅاپي توګه په بخار بدليږی. يعنی اوبه د اوبلن حالت نه به ګاز (بخار) اوړی. دلته ګورو چي اوبو تغيير کړی دي. دی شان تغيير ته، کيفی تغيير وايي.

داسی نتيجه اخلو چي: **کمی تغيير** ورو ورو او سوکه سوکه او نشو کولای هغه سم دستی احساس کړو. پداسی حال کي چي **کيفی تغيير** ناڅاپی او ډير ژر را منځ ته کيږی، دا شان چي آن کولای شو هغه احساس کړو.

د مارکس دیالکتیک وايي: وده یا پرمختګ، کیفي تغییر تـه د کمي تغییر د رسیدلو پایله ده، او یا پـه بلـې وینـا کلـه چـي کمي تغییر په کیفي تغییر بدل شي، وده یا پرمختګ را مـنځ ته کیږي. کله چې وایـو ټـول شـیان د پرمختـګ او ودې پـه حال کې دي، یعنی دا چې هر شي یو تاریخ لري: د پیدایښت او ودې تاریخ. د مثال په توګه ځمکه ملیاردونه کاله د یـوې ډیرې تودې یا اوبلنې ټوټې پـه څیـر وه او میلیونـه کالـه تیـر شول تر څو خپل دغه حالت له لاسه ورکړي او ورو ورو سړه شـي. ملیاردونـه کالـه تیـر شـول تـر څـو بـوټي او د اوبـو موجودات او غرونه او د وچې موجودات یي پر مخ پیدا شـي او آخر هم اوسنی حالت ته راورسیږي. نو پـدې اسـاس وایـو چې ځمکه یو تاریخ لري. (د ځمکې تاریخ مو پـه لنـډه توګـه له نظر نه تیر کړ.)

په عمومي توګه دیالکتیک، د طبیعـت او ټـولنې د تکامـل یـا ودې تاریخ څیړي او مطالعه کوي او مثلاْ وایي چې ځمکـه څه وه، څه شوه او څه به شي.



که یو موټر له غره سره ولړیږي، مخه به یې کړوپه او خرابه شي چې دی ته هم تغییر یا بدلون وایو خو له کمي او کیفي تغییر سره توپیر لري، ځکه، که موټروان له احتیاط څخه کار اخیستای وای، دا تغییر به نه وی را منځ ته شوي. نو کولای شو د دی تغییر مخه ونیسو، یا مثلاً که تاسی یو چینجي تر پښو لاندی کړی، چینجی تغییر کوی، یعنی کولمی یې را وځی، خو که تاسی هغه تر پښو لاندی کړی نه وي، چینجی به ژوندی پاتی شوی وی. نو ددی تغییر مخه هم نیول کیدای شی. د شان تغییراتو ته **میکانیکی تغییر** وایي.

خو کمي او کیفي تغییرات، هغه تغییرات دي چې په طبیعت او ټولنی کی تر سره کیږی او په هیڅ توګه نشو کولای د هغی مخه ونیسو. مثلاً نشو کولای د ځمکی د تغییر یا د بوټو او ځنانورنو د ودی مخه ونیسو. مګر دا چی کوم شی د هغی د میکانیکی تغییر سبب شی. مثلاً که یو څوک یو بوټی له ریښی را وکاږی یا ږلی هغه له منځه یوسی؛ او یا یو چینجی تر پښو لاندی شی او داسی نور.

د غنمو دانه په ځمکی کی کرو، دغه دانه له لمر څخه د حرارت په اخیستو، تغذیی او د نموالی له کبله، له څه مودی

وروسته شنه کیږي، یعنی د یوه کوچنی بوټی په شان له خاورو سر را باسی، وده کوی ځانګی نیسی، پاڼی او ګل کوی او آخر هم له دغی کرل شوی دانی څخه په سلګونو نوری د غنمو دانی پیدا کیږی کله چی د غنمو دانه کرو، د غنمو دانه وده کوی او د غنمو وږی تری جوړیږی. دا د غنمو وږی، د غنمو هغه لومړی کرل شوی دانه نه ده، بلکه اوس یی فرق کړی او د غنمو په وږی بدل شوی ده، یعنی تغییر یی کړی او د ډول تغییر ته **دینامیکی تغییر** وایی.

دوستانو، حتماً پوهیږی په هغه ټولنه کی چي ژوند کوئ. یو تاریخ هم لري. لکه څرنګه چی ټول شیان تاریخ لري، ټولنه هم یو تاریخ لري. ټولو لمړنی انسانانو ګډ ژوند کاوه، په ګډ



ډول یی ښکار کاوه، په ګډه سره به ویده کیدل او لنډه دا چی ګډ ژوند یی درلود. دا د انسانی ټولنی لومړنی پړاو دی چی ورته **لومړنی کمون** وایی. دی پړاو ورو ورو حرکت کاوه

تر هغې چې لومړنی کمون له منځه ولاړ او ځای يې برده‌ګی ونیو. د لومړنی کمون حرکت تر برده‌ګی پړاو پورې، کمی تغییر او د لومړنی کمون له منځه تلل او پر ځای يې برده‌ګی راتلل، کیفی تغییر دی.

نو ویلی شوو ټولنی وده کړې ده او دا وده د یوې شیبې لپاره هم نه غوځیږي. پر دی اساس برده‌ګی حرکت کوي او د سلګونو کلونو وروسته خپل ځای **فیوډالیزم** ته ورکوي.

فیوډالیزم، د ټولنی د تکامل هغه پړاو دی چې پاچا به د خپلو ځمکو ډیره برخه اشرافو ته ورکوله او اشرافو به دا ځمکې په اجاره ورکولې. په فیوډالیزم کې دوه طبقې موجودې وي: د فیوډال طبقه (ستمګره) او د دهقان طبقه (زیارکښه).

د برده‌ګی حرکت تر فیوډلیزم پورې کمی تغییر دی، خو د برده‌ګی له منځه تلل او د فیوډالیزم را منځته کیدل، کیفی تغییر دی.

همدا ډول فیوډالیزم هم تکامل کوي تر هغه چې په بشپړه توګه نابودیږي او وار پانګوالۍ ته رسیږي.

پانګوالۍ د کارګرانو د انقلاب له لارې، خپل ځای و کمونیزم لوری پړاو یعنی سوسیالیزم ته ورکوي. سوسیالیزم هم حرکت کوي او کمونیزم ته رسیږي. د کمونیزم په رامنځ ته کیدو سره، پانګوالي او ورسره جوخت ظلم او زبیښناک او طبقه له منځه ځی.

د مارکس له نظره د ټولنی وده په دې ډول رامنځته کیږي:




آیا تر اوسه مو کله فکر کړی چی کله انسان یا بل هر ژوندی شئی مړ شي، څه تري جوړیږي؟ ستاسو په منځ کي به حتماً داسې کسان وي چي خیال کوی کله چی یو څوک مړ شی، نور نو ختم دی او له منځه تللی دی. خو زما ګرانو دوستانو، داسی نه ده. ژوند او مرګ د یو بل ضد دي. یو څوک چی ډیر زیات ناروغه وي، په حقیقت کی له مرګ سره جګړه

کوي. نو بیا ژوندون او مرګ تل یو له بل سره د مبارزی په حال کی دیو یعنی د یو بل ضد دي.

خو آیا ویلی شو چی له مرګ سره هر څه له منځه ځی؟ نه، کله چی یو شئ ژوندی شی مري، د هغی مړ جسم، خاوره پیاوړی کوي او بوټی او میوی هم له هغی تغذیه کوي. همدا شان انسانان او ځناوران له دغو بوټو او میوي نه استفاده کوی او خپل ژوند ته ادامه ورکوي. نو پر دی اساس، مرګ له ژوند سره اړیکی لري. یعنی مرګ د یو بل شی د ژوند لا مل کیږی او له ژوند څخه جلا ندی.

د مرګ او ژوند مبارزه، د ودی عامل دی.

د مارکس دیالکتیک وایی: وده، د تضادونو مبارزې ته وايي.

په پانګوالی نظام کی، پانګوال په ډیری بیرحمی سره کارګران زبیښی او وربانـدی ظلم کوي، نو پر دی اساس کارګر او پانګوال د یو بل ضد دی او همدا تضاد د ټولنی د ودی لامل کیږي.

پانګوال او کارګر، تل له یو بل سره د مبارزی په حال کی دي؛ او بالاخره کارګران انقلاب کوي، پانګوال ته ماته ورکوی او سوسیالیزم ټینګوي.

خو لکه څرنګه چی تاسو ته سوسیالیزم روښانه کړی وی، لانه دی روښانه کړی. سوسیالیزم د کمونیزم لومړنی پړاو دی چی هم په کی د پانګوالۍ ځینی او هم د کمونیزم ځینی خصوصیات شته. نو پر دي اساس کولای شوو ووایو چی سوسیالیزم هغه پل دی چي د پانګوالی او کمونیزم په منځ کی واقع شوی.




د پانګوالۍ په نظام کی که چیری پانګوالی نه وي، کارګران به هم نه وي.

نو دی پایلی ته رسیږو: د پانګوالۍ په نظام کی، پانګوال او کارګر سره له دی چی له یو بل سره د مبارزی په حال کی

دی، له یو بل سره وحدت هم لري. ځکه چې پانګوال بې له کارګره شتون نلري او کارګر هم بې له پانګواله.

همدا شان، د نړۍ ټول شیان او پدیدې په داسې حال کې چې له یو بل سره تضاد لري او د مبارزې په حال کې دي، خو له هغه ځایه چې د تضاد یو اړخ له شتوالي پرته د موجودیت امکان نه لري، نو له یو بل سره د وحدت په حال کې هم دي. د مثال په توګه نشو کولای چې نیمه منه وخورو او بیا هم پوره منه ولرو. یعنې د پانګوالۍ په نظام کې یوازې کارګر یا یوازې پانګوال وجود درلودلی نشي. د غنمو یوه دانه لرو، دغه دانه په نم او د لمر په حرارت او په تغذیې سره شنه کیږي او وده کوي، ځانګې او ګلان نیسي او بالاخره له همدغې کرل شوې دانې څخه د غنمو په سلګونو دانې لاس ته راځي.

د غنمو دغه کرل شوې دانه له یوې خوا غواړي په خپل حالت پاتې شي او له بلې خوا شنه کیږي او وده کوي، او دومره مبارزه کوي تر څو د یوه کوچني بوټي پشان پر ځمکې شین شي. دغه بوټی وده کوي، ځانګه نیسي، ګل او میوې کوي (د غنمو د ګل میوه، هماغه غنم دی خو یو غنم نه بلکه د غنمو نوري په لسګونو او سلګونو دانې)، کله

چې کرل شوی غنم شین کیږي؛ یعنې د غنمو دانه رد یا نفی کوي او د غنمو لومړی دانه له شنه کیدو وروسته له منځه ځي.

د غنمو دانه وده کوي او د یوه کوچنی بوټی په شان له خاورو سر راباسي، یعنی همدي کوچنی بوټی د غنمو لومړنۍ دانه **رد** یا **نفي** کړی ده. همدا شان دا کوچنی بوټی خپلی ودي ته ادامه ورکوي، خانګه او ګل نیسی او داسی نتیجه اخلو چی همدي خانګی او ګل کوچنی بوټی **رد** یا **نفی** کړی دی.

له ګل څخه بالاخره میوه (د غنمو تازه داني) را پیدا کیږي. نو بیا وایو چی ګل بیا رد یا نفی او د غنمو په دانو بدل شوی دی. مخکی مو وویل چی ګل هم پخپله د بل شی د **نفی** څخه پیدا شوی دی، نو بیا ویلی شوو چی ګل د **نفی – نفی** دی.

یوه پوښتنه: ولي وایو چی ګل د نفی – نفی دی؟

ځواب: حتماً په یاد لرۍ چی د غنم له کرل شوی دانی څخه پیدا شوی، نو له هغه ځایه چی ګل د غنمو له داني څخه پیدا شوی او بیرته په خپله د غنمو په دانو بدل شوی دی.

وایو چې **نفی – نفی** دی. د غنمو تـازه دانـی د ګـل د **نفـی –** نفی نتیجه ده.

د غنمو کرل شوی دانه **تز** دی.

د دانی شنه کیدل، تری بوټی جوړیدل، ځانګـه نیـول او ګـل کول (چې د غنمو د کرل شوی دانی نفی دی) **انتی تز** دی. د غنمو نوی تازه دانی چې دی ګل د نفی – نفی نتیجـه ده، **سنتز** دی.

ګرانو ځوانانو، آیا کولای شوو ووایو چې د غنمو یوه دانه هم تِز وي او هم سنتِز؟

نه، زما ګرانو دوستانو داسي ویلی نشـو، هیچـا دا خبـره نـده کړې. د غنمو تازه دانـه چـې د غنمـو لـه کـرل شـوې دانـي څخه پیدا شوې، له کرل شوی دانی څخه یوه اندازه بشـپړه یا کامله ده. البته موږ نشو کولای د غنمو په دانی کـی دا بدلون او وده احساس کړو. ځکـه چـې دا بـدلون لـه زرګونـو کلونو وروسته را څرګندیږی.

نو دي نتیجی ته رسیږو چـی سـنتِز لـه تِـز څخـه یـوه درجـه پرمختللی دی.

د غنمو کرل شوي دانه — کوچنی بوټی او ځانګه او ګل — د غنمو پخی شوی دانی

↓ ↓ ↓

تِز — انتی تِز — سنتِز

ښه به داوی چی د دي مطلب د روښانه کولو لپاره یو بل مثال هم ورکړو. خو بده به نوی چی د دي مثال له ورکولو مخکی پدی پوه شوو چی طبقاتی نظام څه ته وایی؟

طبقاتی نظام د ټولنی هغه نظام ته وایی چی په کی طبقی موجودی وي. دا شان چي یوه طبقه ظالمه او زبیښونکی او بله طبقه مظلومه او زبیښل شوی وي. لکه د بردګی نظام پشان چي په هغه کی د برده‌لرونکی طبقه زبیښونکی او د بردی (مریی) طبقه زبیښل شوی وي او مظلومه ده. یا فیودالیزم، چی په هغی کی فیوډال یا ارباب ظالمه طبقه او دهقان زبیښل شوې او مظلومه طبقه ده؛ او آخری طبقاتی نظام، پانګوالی ده چی په کی پانګوال زبیښونکی او ظالم او کارګر زبیښل شوی او مظلوم دی.

اوس وګورو چی په طبقاتی ټولنه کی تِز، انتی تِز او سنتِز په کومه بڼه راښکاره کیږي: د انسانی ټولنی لومړنی نظام یعنی **لومړنی کمون** چی یو بی طبقی او ګډ نظام و، **تِز** دی.

**طبقـاتی نظـام** (بـردهګـی، فیـوډالیزم، پـانګوالی) چـی دغـه لومړنی نظام یی نفی کړی دی، **انتـی تِـز**، یعنـی د **تِـز ضـد** دی.

اخـری طبقـاتی نظـام پـانګوالی ده. لـه پـانګوالۍ وروسـته کمونیزم را منځتـه کیـږی. پـه کمـونیزم کی هـم د لـومړنی کمون پشان یو ګډ ژوند واکمن کیږی، نو پردی اساس مـوږ یو وار بیا له پانګوالی څخه یو ځلی ګډ ژوند تـه رسـیدلی یـو. نو وایو چی پانګوالی خپل ځان نفی کړی دی او په کمـونیزم (ګډ ژوند) بدل شوی دی. خو څه چی روښـانه دي هغـه دا چی پانګوالی پخپله د بل شی له نفي رامنځته شوې او د نفی – نفی ده او کمونیزم چي د پانګوالی د **نفی – نفی** نتیجه ده، **سِنتِز** دی. خو پوهیږو چی سنتز هم هماغه تز دی خـو پـه دی توپیر سره چی له لومړنی تز څخه بشپړ دی.

کمونیزم ⟵ طبقاتی نظام ⟵ لومړنی کمون

سنتز ⟵ انتی تز ⟵ تز

پـه لـومړنی کمـون کـی ژونـد ګـډ دی او طبقـی نشـته. پـه کمونیزم کی هـم ژونـد ګـډ دی او طبقی نشـته، نـو لـومړنی

کمون **تـز** او کمـونیزم **سـنتز** دی. پـه لـومړنی کمـون کـی د تولید وسایل ادنی (ساده) وو او هر چا په سختی سره خپلـه ګیډه مړوله، خو په کمونیزم کی د تولیـد وسـایل پـه عجیبـه توګه پرمختـګ کـوي او ټـول د تولیـد پـه سـترو وسـایلو کی شریک دي.

په لومړنی کمون کی به انسانانو د ورځی ۱۳ یا ۱۴ ساعته کار کاوه تر څو خپلـه خیټـه مـړه کـړی، خـو پـه کمـونیزم کـې د تولیدی وسایلو د پرمختګ او پرګنیزه مالکیت له امله انسان د ورځی په ۵ او ۶ ساعتونو کار کولو له دي هم په کـم وخـت کی کولای شی ډیر ښه ژوند ولري.

نو ښکاره ده چی کمـونیزم (سـنتز) لـه لـومړنی کمـون (تـز) څخه ډیر پرمختللی دی.

له هغه څه چی مو د تِز، انتی تِز او سنتز په هکله وویل داسی نتیجه اخلو: د تز او انتی تز له مبارزی څخـه، تکامـل یـا وده تر لاسه کیږی یا په بله وینا د تز او انتی تز له مبارزی څخـه سنتز تر لاسه کیږي.

پوښتنې او ځوابونه:

لومړی کوښښ وکړی په خپله لاندینیو پوښتنو ته ځواب ورکړی او بیا یې له ورکړل شویو ځوابونو سره پرتله کړی.

**۱. آیا ماده له انسان څخه مخکې هم وه؟**

ځواب: حتما به وایاست چې هو. ځکه له انسان څخه مخکې هم ځمکه او ډیر نور شیان لکه ستوري او سیارې موجودې وې.

**۲. آیا ماده په کومې ځانګړې نیټې کې پیدا شوې ده؟ یعنې داچې اول موجوده نه وه او بیا وروسته پیدا شوې ده؟**

ځواب: نه، ماده تل وه او هیڅکله به هم له منځه ولاړه نشي، یعنې وه، شته او وي به. موږ مخکې وښودله چې ماده له فکر او شعور څخه مخکې موجوده وه. همدا ښایي چې نشو کولای د مادې لپاره کومه ځانګړې نیټه وټاکو. نشو کولای په نړۍ کې داسې یو شئ پیدا کړو چې نه جوړ شوی او یا هم په بشپړه توګه له منځه ولاړ شي. که چیرې یو شئ له منځه ولاړ شي یو بل شئ ترې جوړیږي.

**۳. مادي یعنی څه؟**

ځواب: هر څه چې له مادې نه جوړ شوی وی، مادي دی.

**۴. آیا نړی تا مادي ویلی شوو؟**

ځواب: هو، ځکه چې نړی له مادی څخه جوړه شوی ده.

**۵. آیا ټولنه او طبقاتی مبارزه، یعنی د ظالم او مظلوم تر منځ مبارزه، د مادي نړی برخه ده؟**

ځواب: هو، له مادي نړۍ څخه مقصد یوازی طبیعت ندی، بلکی ټولنه، مختلفی طبقی او طبقاتی مبارزه هم په مادي نړی کی شامل دي.

**۶. آیا ماده حرکت کوي؟**

ځواب: هو، ماده بی له حرکته وجود نلري. په حقیقت کی په نړی کی هیڅ شئی له مادي پرته حرکت نه لري نو د مادي حرکت یو همیشنۍ حرکت دی.

**۷. آیا کولای شوو د حرکت لپاره یوه نیټه وټاکو؟**

ځواب: لکه څرنګه چې د مادی لپاره کومه نیټه نشو ټاکلی، همدا ډول د حرکت لپاره هم کومه نیټه نشو ټاکلی.

**۸. آیا ماده بې له حرکت او حرکت بې له مادی وجود لري؟**

ځواب: نشو کولای ماده او حرکت له یو بل څخه جلا کړو، حرکت او ماده له یو بل پرته وجود نلري.

**۹. آیا ماده او حرکت کولای شي له وخت او ځای پرته شتوالی ولري؟**

ځواب: نه، ځکه چې ماده حجم لري، ځای ته اړتیا لري او لکه څنګه چې حرکت کوي نو وخت ته هم اړتیا لري.

**۱۰. د وخت او ځای په اړه ایدهآلیستان څه نظر لري؟**

ځواب: ایده‌آلیستان وایی چې وخت او ځای د انسان فکر پیدا کړی دی، یعنې وخت او ځای د انسان د فکر محصول دی.

### ۱۱.  آیا د ایده‌آلیستانو نظر سم دی؟

ځواب: نه، موږ پوهیږو چې ځمکه له انسان څخه ملیاردونه کاله مخکي رامنځ ته شوې او له دې کبله حجم لري، حرکت کوي او یوځای او وخت ته اړتیا لري.

### ۱۲.  آیا وخت او ځای پای مومي؟

ځواب: نه، ځکه چې ماده او حرکت پیل او پای نه لري، نو وخت او ځای هم نه پیل لري او نه هم پای. وخت او ځای همیشنی دي.